# فرحة الصائم

## د روژې ، تراویح او اعتکاف مسئلې






یاسین زی خپرندویه ټولنه



الحمدلله وكفىٰ وسلام علىٰ عباده الذين اصطفىٰ

قدرمنولوستونكو!

نژدې هره ګناه دنفس يانس زيږنده وي عجبه داده چي په پښتو كښي هم دنس اونفس ترمينځ صرف دفافرق دى په حقيقت كښي هم همداسي ده كه په دنيا كښي وګورونودغلا ،زنا ،ناحقه وژنو،چوراوچپاو ،غصب ،جاه طلبي سودخورى ،بدې اخستني اوديته ورته دګڼ شمير ګناهونواصلي سرچينه نس دى ددغو دواړودمهاركولولپاره مشق لپاره الله تعالىٰ په مومن بنده باندي په كال كښي يوه مياشت روژه نيول فرض كړې ده چي پكښې دسهاره ترماښامه نه يوازي دحراموبلكه د روا خواهشاتو دپرځاى كولواجازه هم نسته كوم مومن بنده چي پرلپسې يوه مياشت دخپل نس اونفس په مهاروْلو كښي داډول بريالى سي نوپه هغه كښي دتل لپاره په خپل نفس باندي دځاراوضبط وړتيا پيداكيږى اودناوړوكړنو څخه دځان ژغورني اسانه لارپه لاس ورځي داهم هغه تقوىٰ ده چي د قران كريم دبقرې سورت په(۱۸۳)أيت كښي يې الله تعالىٰ يادونه كړې ده چي :پرتاسو روژه ددې لپاره فرض كړل سوې ده چي ښايي تاسي تقوى حاصله كړئ يعني دګناهونوڅخه راوګرځى اودبقرې سورت په (۱۸۵)آيت كښي يې بل داحكمت بيان كړى دى چي روژه ددې لپاره پرمومنانو باندي فرض كړل سوې ده چي: ښايي دوى دنعمتونوشكر ادا كړي او دپښتودامتل مشهوردى چي: نعمت پس دزواله معلوميږي دغه متل په عربي كښي هم سته (النعم مجهولة فاذافقدت عرفت) كله چي مومن په روژه كښي دمهمونعمتونولكه خوراك څښاك جماع څخه منع سي نودى ديته اړكيږي چي ددغو نعمتونوحق په شكر ايستلوسره اداكړي د روژې بل حكمت دادى چي موږدمسكين پرحال باندي خبرسي اودهغوى لوږه فقر اوفاقه پخپله هم احساس كړي ترڅو پرهغوى باندي ورحميږي،احسان ورسره وكړي روژه يوازنى هغه عبادت دى چي په اړه يې الله تعالىٰ فرمايي :دبني آدم هرعمل ده لره دى يو روژه مالره ده اوزه يې بدله وركوم په دې

حديث كي الله تبارك وتعالىٰ دروژې او دهغې دبدلې وركولو نسبت ځان ته وكړ حال داچې ټوله عبادات الله تعالىٰ لره دي دا ځكه چې د الله تعالىٰ څخه پرته بل دهيڅ يو باطل معبود تعظيم دروژې په شان عبادت سره تراوسه نه دى سوى اگركه په نورو ډولونو باندى سوى دى ځكه نو دروژې نسبت الله تعالىٰ خپل ځان ته وكړ دا ډول روژه دريا او ځان ښودني څخه ډيره ليره ده دايوازنى عبادت دى چې پرته له تعالىٰ په روژاتي باندي بل څوك نه خبريږي ځكه چې روژه د نورو عباداتو په شان دروژاتي په قول يا عمل باندي له ورايه نه ښكاري بلكه روژه خودالله درضايو نيت دى چې هغه يو معنوي عمل دى بل چاته يې علم نه ستته د روژې عبادت هم خپل ځانته ځانگړي مسايل لري كه چيري دروژې مسايلو ته پام ونه سي نوبيا پرته له تندي اولوږي بل شي بنده ته په لاس نه ورځي ددغو مسايلو څخه ډيرى كسان ناخبره وه نو ځكه مي لږ مده مخكي اراده وكړه چې ترخپله وسه هغه مسألى سره راجمع كړم چې زموږ خلگ ورسره مخ دي البته وخت راباندي كم سو ومي نه سواى كړاى چې ټولي مسألې راجمع كړم خوبيا هم هغه مهمي مسألې مې راجمع كړې داعتكاف اړوند مخكنى چاپ سوې رساله مي هم ددې كتاب سره ځكه يوځاى چاپ كړه چې دا هم دروژې اړوند دي الله تعالىٰ دي زما دالږ خدمت په خپل دربار كښي د ثواب وړوگرځوي.

ددعامحتاج: سيد حافظ عبدالباري حنفي ديوبندى غفرله الباري من سادات جوى لاهور

(۲۵ دشعبان المعظم ۱۳۲۶هجري قمري)

درګ اوغوښي په پیچکاری او سیروم لګولو سره روژه نه ماتیږي البته دضرورت پرته صرف دمستی اوطاقت لپاره یې لګول مکروه دي روژه بیاهم نه فاسده وي(۱)

اوکه همدغه پیچکاری یاسیروم نیغ په نیغه په نس یاسینه کي ولګول سي لکه لیوني سپي خوړل سوي ته چي ورلګول کیږي نوبیاروژه ماتوي البته صرف قضاسته کفاره نسته. (۲)

---

۱ - امدادالفتاوی: ۲/۱۵۹ چاپ: مکتبه سید احمد شهیداکوړه ختهک ، فتاوی فریدیة پښتو: ۴ /۱۲۸ چاپ: رشیدیة کویټه ،فتاوی محمودیة :۱۵ / ۱۷۵ چاپ :دارالاشاعة کراچي ،الفقه الحنفي فی ثوبه الجدید :۱ /۴۱۴ چاپ : حقانیة کویټه وبیروت ،کفایت المفتي :۶ /۳۷۴ سوال نمبر :۲۵۲۲ چاپ: ادارة الفاروق کراچي ، فتاوی حقانیة :۴/۱۶۲ چاپ : دارالعلوم حقانیة اکوړه ختهک ، فتاوی دارالعلوم زکریا پښتو :۳/ ۵۱۵ چاپ:رشیدیة ، آپ کي مسایل اوران کاحل : ۴ /۵۷۸ ،۵۸۲ چاپ : مکتبه لدهیانوي رح کتاب الفتاوی :۲ دریم برخه /۲۷۵ چاپ:زمزم پبلشر کراچي جدید فقهي مسایل : ۲ /۱۲۲ چاپ: زمزم پبلشر کراچي قاموس الفقه :۴ /۱۹۳ زمزم پبلشر کراچي ، فتاوی محمودیة : ۱۰ /۱۴۸ باب مایفسدالصوم ومالایفسدالصوم چاپ: ادارة الفاروق کراچي ، امدادالمفتین :۲/۴۸۹ دارالاشاعت کراچي فتاوی حقانیة :۴ /۱۶۲ چاپ: دارالعلوم حقانیة اکوړه فتاوی دارالعلوم دیوبند :۶/ ۴۰۸سوال نمبر: ۹۶چاپ: مکتبه حقانیة ملتان روزی کي مسایل کا انسایکلو پیډیا :۳۶ ،۳۷ چاپ: بیت العمار کراچي ،فتاوی عثماني :۲ /۱۷۶ مکتبة المعارف کراچي

هغه آلات چي دمعايني لپاره نن سبامعدې ته شوه کيږي کې بيرته يوګړی بعده راوکاږي روژه نه په ماتيږي مګرکه هلته پاته سي بيانو روژه فاسده وي صرف قضا لري دامسأله دراتلونکي مسألې څخه مستنبط سوې ده(٣)

که څوک په تار تړلې غوښه تيره کړي بيرته يې ژرراوکاږي روژه يې نه په ماتيږي که يې پريږدي روژه يې ماتيږي.(٤)

که څوک په هيره سره خوراک ، څښاک ياجماع(کوروالي) وکړي روژه يې نه ده ماته داکه فرضي روژه وي او که نفلي فرق نه لري .(٥)

---

– قاموس الفقه : ٤/ ١٩٣ زمزم پبلشر کراچي ، فتاوی فريدية پښتو: ٤/ ١٢٨ چاپ: رشيدية کويټه . جديد فقهي مسايل : ٢/ ١٢٢ چاپ: زمزم پبلشر کراچي بدايع الصنايع : ٢/ ٩٣ ،الهدايه : ١/٢٠٠

– قاموس الفقه : ٤/ ٢٩٣ چاپ زمزم پبلشرز ، هندية (علمګيري): ١/ ٢٠٤ رشيدية کويټه ، الدرالمختارمع الرد ٢/ ٩٧ -١٠٥

٤– قاموس الفقه : ٤/ ٢٩٣ چاپ زمزم پبلشرز ، هندية (علمګيري): ١/ ٢٠٤ رشيدية کويټه ، الدرالمختارمع الرد ٢/ ٩٧ -١٠٥

٥– قاموس الفقه : ٤/ ٢٩٣ چاپ زمزم پبلشرز ، هندية (علمګيري): ١/ ٢٠٤ رشيدية کويټه ، الدرالمختارمع الرد ٢/ ٩٧ -١٠٥

که څوک په هیره سره دروژې په خوړلوولیدل سي داسړی که ځواکمن اوقوي وو روژه یې ترماښامه رسولای سوای نولیدونکی دي روژه ورپه یاد کړي اوکه کمزوره یاسپین ږیری وو لیدونکی کولای سي چي چوپتیا غوره کړي .(٦)

که څوک دروژې په خوړلومجبورکړه سواوپه زوره یې روژه په وخوړل روژه یې ماته سوه قضاسته کفاره نسته . (٧)

په خوله باندي داوبو رغړولو ورسته که پاته لندوالی دناړوسره تیرسي روژې ته یې تاوان نه رسیږي .(٨)

که دپزي پړپوللو .په خوله باندي داوبورغړولویاغسل کولوپرمهال په خطاکي دچاڅخه اوبه تیري سي روژه یې ماتیږي البته صرف قضاورباندي لازمه ده اوکه په هیره داسي وسوه روژه یې نه ده ماته .(٩)

---

٦- قاموس الفقه : ۲۹۳/۴ چاپ زمزم پبلشرز کراچي ، هندية (علمگیري): ۲۰۴/۱ رشيدية كويته ،

٧- فتاوی الهندية: ۲۰۲/۱ چاپ: رشيدية كويته ،

٨- فتاوی الهندية: ۲۰۳/۱ چاپ: رشيدية كويته ، قاموس الفقه : ۲۹۳/۴ چاپ زمزم پبلشرز کراچي

٩- فتاوی الهندية: ۲۰۲/۱ چاپ: رشيدية كويته

که څوک دخو به وي په خطاکي اوبه وچښي روژه يې ماته ده صرف قضا وربانديستته .(١٠)

که څوک خاوره ،لوټه ،ډبره ،ريګ ،سيميټ ،لرګی ،پمبه ،واښه ، کاغذ ، مندکه ، وچ ماش ، وچي اومې وريجي ، دال يا ديته ورته هرهغه شی وخوري چي عموما دخوراکي يا درملي تو کوڅخه نه بلل کيږي رژه يې ماته ده صرف قضا ورباندي ستته . (١١)

که څوک دسرشويې ختوخوړلومعتادوي که يې په فرضي روژه کي وخوري قضا او کفارة دواړه ورباندي لازميږي .(١٢)

که څوک په غاښو کښي بند خوراکي شی وخوري که دنخود ترداني کم ياکوشنی وو روژه ی نه ده ماته اوکه دنخود هومره يا ترهغه زيات ياغټ وو روژه يې ماته ده صرف قضا ورباندي ستته

---

١٠ـ فتاوی الهندية:١/٢٠٢ چاپ: رشيدية کويټه

١١ـ ملخص ازفتاوی الهندية:١/٢٠٢ چاپ: رشيدية کويټه ، وقاموس الفقه :۴/ ۲۹۲= زمزم پلشرز کراچي

ـ ملخص ازفتاوی الهندية:١/٢٠٢ الباب الرابع فيمايفسدوفيمالايفسد چاپ: ١٢رشيدية کويټه

او که يې راوباسي بيرته يې وخوري روژه خويې فاسده ده دصحي قول له مخې کفاره ورباندي نسته .(١٣)

که چا دپېشلمي ګوله په خوله کښې وه چه ور باندي سهارسو (سپېدې ورباندي وچولې) ياپې په هيره ګوله جوړه کړه په خوله کښې واچول کله چي يې وژوول باره يې روژه ورپه يادسوه ګوله يې راونه کښل بلکه پسي تيره يې کړه روژه يې ماته سوه کفاره هم ورباندي سته په دواړوصورتو کښې اوکه يې راوکښل بيرته يې تيره کړه صرف قضاورباندي لازميږي په دواړوصورتو کښې.(١٤)

---

١٣- فتاوی الهندية(علګيري): ١/ ٢٠٢ الباب الرابع فيما يفسدوفيمالا يفسد چاپ: رشيدية کويټه

١٤- فتاوی الهندية(علګيري): ١/ ٢٠٣ الباب الرابع فيما يفسدوفيمالا يفسد چاپ: رشيدية کويټه ، البحرالرايق: ٢/٢٩٧ يادونه : په قاموس الفقه : ۴/ ٢٩٣ چاپ زمزم پبلشرز کراچي کښې دامسأله برعکس ليکل سوې ده ځکه نو داعتبارو ړ نه ده يابه غالباد کاتب غلطي وي خوبيا هم مؤلف دامت برکاته ته يې بايداطلاع ورکول سي . والله تعالیٰ اعلم

که ګرز ،دود یادېته ورته شیان بې اختیاره په ستوني ننوزي روژه نه ماتوي.(۱۵)

که څوک ولمبیږي په بدن کښې یوډول خنکي اویخوالی احساس کړي یاسر ،ږیره ، بریتونه اوبدن غوړکړي اثریې دننه بدن ته ورسیږي اویا په سترګو کښې دوا واچوي او خوند یې په ستوني کښې احساس کړي روژه یې نه ده ماته.(۱۶)

که دچا خوا راوګرزي قی ووهي لږ وي یا ډیریایې په قصده ووهي خوډ که خوله نه وي په دغه صورتو کښې روژه نه ده ماته که یې په قصده په ډ که خوله قی وواهه روژه یې ماته ده صرف قضاوربادي لازمه ده(۱۷)

---

[15] ـ فتاوی الهندیة(علګیري): ۱ / ۲۰۳ الباب الرابع فیمایفسدوفیمالایفسد چاپ: رشیدیة کویته ،

[16] ـ فتاوی الهندیة(علګیري): ۱ / ۲۰۳ الباب الرابع فیمایفسدوفیمالایفسد چاپ: رشیدیة کویته ،قاموس الفقه : ۴ / ۲۹۳چاپ زمزم پبلشرز کراچي

[17] ـرد المحتار : ۲/ ۴۱۴چاپ: سعیدجوهرة النیرة : ۲ / ۳۱العنایة : ۳ / ۲۹۰ قاموس الفقه : ۴ / ۲۹۳ : زمزم پبلشرز روزی کي مسایل کاانسایکلو پیډیا یادونه :دهندیې (عالمګیري) ج ۱/۲۰۴دلومړی لیکي عبارت سراوپای نه سره لګیږي دسرخوایي په دې دلالت کوي چي که څوک په ډ که خوله په قصده قی ووهي بیرته یې په قصده تیر کړي روژه یې نه ده ماته او ورستنی خوا یې پردې دلالت کوي چي په دواړو صورتو کښې روژه ماته ده حل یې زما په اند دادی چي دغه دوه صورته یې بیرته

که دسترګو اوښکي يو يادوه څاڅکي خلې ته راشوه سي اوتيري سي روژه نه ماتوي البته که ډيري وې په خوله کښي يې تريو والې محسوس سواو څه اندازه سره راجمع سوې بيايې تيري کړې روژه يې ماته ده صرف قضالري دمخ خولې هم داحکم لري (۱۸).

که څوک په غوږ ياپزه کي لنده دوا واچويروژه يې ماتيږي صرف قضاسته که وچه دوا وه بيانو هغه مهال ماتيږي چي اجزايې په يقيني توګه دننه ولاړسي که نه نونه ماتيږي مګر که په غوږيا پزه کي اوبه واچول سيروژه يې نه ماتيږي البته که څوک په پزه باندي اوبه دونه کش کړي چي ستوني ته يې اوبه

ځني مستثنی کړي دي او دپښتوقدوري په ۲۵۳ چاپ:ادارة تاليفات ايوبي اوپښتو کنز ۲/۱۵۶چ :حبيبيه کښي دمولوي عبيدالله صاحب داخبره ناسمه ده چي وايي په روژه کي په قي کښي دډ کي اوتشي خولې دفرق فتواجاهلانه ده ځکه ټولوعلماوودافرق ښودلې دی والله تعالی اعلم

۱۸– فتاوی الهندية(علګيري):۱/ ۲۰۳ الباب الرابع فيمايفسدوفيمالايفسد چاپ: رشيدية کويټه ،قاموس الفقه :۴/ ۲۹۲چاپ زمزم پبلشرزکراچي ،روزی کی مسايل کاانسايکلوپيډيا ص:۲۷ بيت العمارکراچي

ولاړي سي کې روژه په يادوه روژه يې ماتيږي کې روژه په ياد نه‌وه نه‌ده ماته.(۱۹)

که نارينه په خپل آله تناسل کي دوا اوبه يا تيل واچوي روژه يې نه ماتيږي که ښځه په شرمګاه کي دوا ،اوبه يا تيل واچوي روژه يې ماتيږي صرف قضا ستته. (۲۰)

که چا دښځي مخ يا شرمګاه ته په شهوت سره يوځل يا څوځله وکتل باره انزال سو اويا يې سوچ ووهي انزال سوروژه يې نه ده ماته. (۲۱)

که خاوند ښځه يا ښځه خاوند په روژه کښي په زوره کووالي کولو ته اړباسي او جماع ورسره وکړي قضا پرسته کفاره نسته البته په زور کونکي باندي کفاره هم لازمه‌ده. (۲۲)

---

۱۹- فتاوى الهندية(علمگيري): ۱/ ۲۰۲ الباب الرابع فيما يفسد وفيما لا يفسد چاپ: رشيدية كويټه ،قاموس الفقه: ۴/ ۲۹۳ چاپ زمزم پبلشرز کراچي ،روزی کی مسايل کا انسايکلوپيډيا ص: ۲۷ بيت العمار کراچي

۲۰- فتاوى الهندية(علمگيري): ۱/ ۲۰۴ الباب الرابع فيما يفسد وفيما لا يفسد چاپ: رشيدية كويټه ،قاموس الفقه: ۴/ ۲۹۲ چاپ زمزم پبلشرز کراچي ،روزی کی مسايل کا انسايکلوپيډيا ص: ۱۲۶ بيت العمار کراچي

۲۱- فتاوى الهندية(علمگيري): ۱/ ۲۰۴ الباب الرابع فيما يفسد وفيما لا يفسد چاپ: رشيدية كويټه ،قاموس الفقه: ۴/ ۲۹۲ چاپ زمزم پبلشرز کراچي ،

که څوک خپله ښځه مچ کړي باره انزال سي یا ښځه خاوند مچ کړي او لندوالی احساس کړي روژه یې ماته سوه صرف قضا وربانديي سته .(۲۳)

که خاوند دښځي سره غاړه تر غاړه سي بدن پسي ومښلوي باره انزال سي روژه یې ماته ده صرف قضا وربا ندي سته او که ښځه په خاوند پسي ځان ومښی باره خاوند انزال سو روژه یې نه ده ماته .(۲۴)

په موټ وهلو سره روژه ماتیږي که یې په خپله ووهي او که یې دښځي په واسطه ووهي صرف قضا سته .(۲۵)

که نارینه په خپل مقعد کښي یا ښځه په شرمګاه کښي په دوا ،تیلو،اوبو او یا بل شي سره لنده ګوته داخله کړي روژه یې ماته ده صرف قضا وربانديي سته په دې شرط چي روژه یې په یاد وي

---

۲۳- فتاوی الهندیة(علمګیري): ۱/ ۲۰۵،۲۰۴ الباب الرابع فیما یفسد وفیما لا یفسد چاپ: رشیدیة کویټه ،ردالمحتار: ۲/ ۴۰۱چاپ:ایچ ایم سعید کراچي
۲۴- فتاوی الهندیة(علمګیري): ۱/ ۲۰۴ الباب الرابع فیما یفسد وفیما لا یفسد چاپ: رشیدیة کویټه ،قاموس الفقه : ۴/ ۲۹۲چاپ زمزم پبلشرز کراچي ،
۲۵- فتاوی الهندیة(علمګیري): ۱/ ۲۰۵ الباب الرابع فیما یفسد وفیما لا یفسد چاپ: رشیدیة کویټه ،قاموس الفقه : ۴/ ۲۹۲چاپ زمزم پبلشرز کراچي .
۲۶- فتاوی الهندیة(علمګیري): ۱/ ۲۰۵ الباب الرابع فیما یفسد وفیما لا یفسد چاپ: رشیدیة کویټه ،قاموس الفقه : ۴/ ۲۹۲چاپ زمزم پبلشرز کراچي .

کې روژه نه وه په یاد بیانه ده ماته او که وچه ګوته داخله کړي هم يې روژه نه ده ماته .(۲۶)

که دغاښ څخه وینه راووزي او دناړو سره تیره سي په ستوني کښې يې خوند هم محسوس سي او ترناړو ډیره وي روژه ماتوي که داسي نه وي بیا روژه نه ماتوي .(۲۷)

دپزي هرډول بلغم که تیرسي یا تیر کړه سي روژه نه ماتوي .(۲۸)

که دیوشي صرف خوند وکتل سي البته تیرنه سي که څه هم داسي کول مکروه دي مګر روژه نه ماتوي .(۲۹)

یادونه :پورتني ذکرسوي مسایل دهرډول روژې سره تړاولري که فرضي وي که نفلی وي که واجب وي البته کفاره یوازي په فرضي روژې پوري تړاولري.(۳۰)

[26]- فتاوی الهندیة(علگیري):۱/۲۰۵ الباب الرابع فیمایفسدوفیمالایفسد چاپ: رشیدیة کویتهه ،قاموس الفقه :۴/۲۹۲چاپ زمزم پبلشرز کراچي ،

[27]- فتاوی الهندیة(علگیري):۱/۲۰۳ الباب الرابع فیمایفسدوفیمالایفسد چاپ: رشیدیة کویتهه ،قاموس الفقه :۴/۲۹۳چاپ زمزم پبلشرز کراچي ،

[28]- فتاوی الهندیة(علگیري):۱/۲۰۳ الباب الرابع فیمایفسدوفیمالایفسد چاپ: رشیدیة کویتهه ،قاموس الفقه :۴/۲۹۳چاپ زمزم پبلشرز کراچي

[29]-قاموس الفقه :۴/۲۹۳چاپ زمزم پبلشرز کراچي

[30]-قاموس الفقه :۴/۲۹۴چاپ زمزم پبلشرز کراچي

بې عذره او بې له جبراو اکراه په قصده روژه خوړل کفاره واجبوي .(۳۱)

په روژه کي مسواک وهل جايز دي که تازه مسواک وي او که وچ وي په اوبو لندوي يا نه وي روژه نه ماتوي.(۳۲)

که چيري دلانده مسواک لندوالی يا يې يوه ريښه ترستوني تيره سوله روژه يې ماته سوله صرف قضا سته .(۳۳)

په روژه کښې دمسواک ژوول نه دي پکار(۳۴)

دغاښو کريم يا پوډر استعمالول په روژه کي مکروه دی که يې خوند تيرسو روژه هم ماته وي صرف قضا سته .(۳۵)

---

۳۱- فتاوى الهندية(علگيري):۱/۲۰۵ الباب الرابع فيما يفسد وفيما لا يفسد چاپ: رشيدية کويټه ،قاموس الفقه :۴/۲۹۰ چاپ زمزم پبلشرز کراچي ،

۳۲- فتاوى الهندية(عالمگيري):۱/۱۹۹ الباب الرابع فيما يفسد وفيما لا يفسد چاپ: رشيدية کويټه ،قاموس الفقه :۴/۲۹۴ چاپ زمزم پبلشرز کراچي

۳۳- شرح مهذب:۵/۳۱۸ ،جديد فقهي مسايل :۱/۱۲۸ زمزم پلشرز کراچي نه ده ماته احسن الفتاوى:۴/۴۴۵

۳۴- فتاوى عثماني :۲/۱۷۶ مکتبة المعارف کراچي ، امداد الفتاوى :۲/۱۴۰ ،۱۴۱ دار العلوم کراچي

۳۵- جديد فقهي مسايل :۱/۱۲۸ زمزم پلشرز کراچي ، کتاب الفتاوى :۲/۲۸۲ زمزم پلشرز کراچي روزی کي مسايل کا انسايکلوپيډيا:۶۲ بيت العمار کراچي

یادونه : زموږ په هیواد کښې دسیابندي په نامه خوږه ولي ته ورته یوډول خوږ اوتریخ مسواک سته خلک یې ډیرزیات کاروي ددې په اړه ماته څرګندحکم په لاس رانه غلی ځکه نو زه دادغابښوپه کریمو باندي قیاسوم اګرکه تر هغوی لاهم په خونداوذایقه کښې زیات دی په روژه کښې یې استعمالول مکروه دی او که یې خوند تر ستوني تیرسي روژه هم فاسده وي په روژه کي بایدداسي مسواک څخه استفاده ونه سي . والله تعالیٰ اعلم.

د نسوارو په کولو،اودسګریټو په څکولوسره روژه ماتیږي او صرف قضا لازمیږي .(۳۶)

دچلم په څکولوسره روژه ماتیږي که یې ګټور وبولي اودخوند ، شوق یا نفسي شهوت اوعادت دپوره کولو لپاره یې وڅکوي کفاره هم باندي لازمیږي ځیني فقهاء دنسوارو او سګریټو په هکله هم داډول د کفارې دلزومخبره کوي .(۳۷)

---

[36] – فتاوی دارالعلوم دیوبند : ۲/۴۲۸ درالاشاعت ، روزی کي مسایل کا انسایکلوپیډیا : ۶۲ بیت العمار کراچي . جدید فقهي مسایل :۱/۱۲۸زمزم پلشرز کراچي

[37] – مراقي الفلاح: ۳۶۴ ،جدید فقهي مسایل :۱/۱۲۸زمزم پلشرز کراچي ، فتاوی دارالعلوم دیوبند : ۶/۴۱۹ چاپ: حقانیة ملتان ،فتاوی حقانیة : /۱۸۸ چاپ: دارالعلوم حقانیة اکوړه ختک

دپزي په نسوارو سره هم روژه ماتيږي. (۳۸)

دانهيلر په استعمال سره روژه ماتيږي صرف قضا سته. (۳۹)

يادونه: انهيلر يوډول ګيسي چلم دی دساه لنډي مريضان يې دلږ ګړي دمه سازی لپاره کاروي.

که خاوند او ښځه په خوښه کوروالي سره وکړي پردواړوباندي کفاره لازميږي که انزال وسي او که ونه سي په دواړوصورتوکښي کفارهورباندي سته (۴۰)

که څوک په قصده داسي يو شی وخوري چي هغه دخوراکي يا دوايي تو کوڅخه وي که لږوي او که ډير کفاره ورباندي واجب ده (۴۱).

---

۳۸- فتاوی دارالعلوم ديوبند : ۶/۴۱۸ چاپ: حقانية ملتان ، امدادالفتاوی : ۲ /۱۳۹ چاپ: مکتبه سيد حمد شهيد بالمقابل دارالعلوم حقانيه ،فتاوی عثماني : ۲ /۱۹۲ کتاب الصوم چاپ: مکتبة المعارف کراچي

۳۹- فتاوی حقانية : ۴ /۱۷۰ چاپ: دارالعلوم حقانية اکوړه ختټک روزی کي مسايل کا انسايکلوپيډيا : ۸۵ بيت العمار کراچي ،کتاب لفتاوی : ۲ /۲۷۷ زمزم پلشرز

۴۰- فتاوی الهندية(عالمګيري) : ۱ /۲۰۵ باب مايوجب لقضاء والکفارة چاپ: رشيدية کويټه ،

۴۱- فتاوی الهندية(علګيري) : ۱ /۲۰۵ باب مايوجب لقضاء والکفارة چاپ: رشيدية کويټه ،

که څوک دسپېدو وروسته مسافرسي نو پاته ورځ روژه به نیسي که يې دعذر یاپرته له عذر څخه وخوري صرف قضا وربانديستنه .(۴۲)

که چا قی ووهی یا شیطان خطا ایستی دده دافکرسو چي روژه مي ماته سو ه باره يې روژه پسي وخوړل قضا پر ستنه نه کفاره .

که چا په قصده روژه وخوړل ورسته په قدرتي او اتفاقي توګه دونه پسي ناجوړه سو چي روژه خوړل ورته رواکیده اویا په هم هغه ورځ مسافرسواو یا ښځه په قصده روژه وخوري ورسته په هغه ورځ حیض یا نفاس ورته رالی په دغه صورتو کښي صرف قضا ستنه کفاره نستنه او که په دغه صورتوکښي په قصده خپل ځان ناروغه کړي بیا کفاره هم وربانديستنه .(۴۳)

هغه سپین ږیري یا سپین سري چي دروژونیولو توان نه لري او ورځ په ورځ دضعیفتیااو کمزورۍ په لور روان وي هغوی کولای سي چي روژې وخوري البته دهري ورځي په عوض کښي به فدیه اداکوي دافدیه که دهري ورځي دا جلا جلا اداکوي او که يې دمیاشتي په شروع یا پای کښي په یو ځل اداکوي دیوې ورځي

---

۴۲- ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ

۴۳-قاموس الفقه : ۲۹۴/۴چاپ زمزم پبلشرز کراچي

دفديې مقدار يوه مسكين ته دوه وخته عادي ډوډۍ وركول او يا في روژه دسرسايې هومره غنم يعني يو كيلو شپږسوه ګرامه (پاوكم دوه كيلو) يا دهغه قيمت وركول دي. (۴۴)

په روژه كښي وينه كښل ياوينه وركول رواده البته كه كمزوره كيدى بيانو مكروه كاردى .

دضرورت په خاطرپه روژه كښي غاښ كښل يا دواپكښي ښودل پر واه نلري البته كوښښ به كوي تر څو وينه يادداوا اجزا څني تيرنه سي او كه اړتيا نه وي بيا يې كښل مكروه دي. (۴۵)

كه چا په روژه كښي مسواك وواهه باره ګمان سو چيروژه مي ماته سوه وروسته قصدا پسي وخوړل قضا او كفاره دواړه پرسته (۴۶).

---

۴۴-تبيين الحقايق : ۱۹۴، ۲/۱۹۳بيروت ،ردالمحتار: ۲/۷۲سعيد آپ كي مسايل اوران كاحل: ۵۹۹/۴ ،كفايت المفتي: ۶/۳۸۴چاپ: ادارة الفاروق كراچي ، قاموس الفقه : ۲۸۹/۴چاپ زمزم پبلشرز كراچي ،فتاوی عثماني: ۲/ ۱۹۱مكتبة المعارف كراچي

۴۵-ردالمحتار: ۲/۳۹۶چاپ: سعيد ، آپ كي مسايل اوران كاحل: ۵۹۹/۴ چاپ:مكتبه لدهيانوي

۴۶- فتاوى الهندية(عالمګيري): ۲۰۶/۱ باب مايوجب لقضاء والكفارة چاپ: رشيدية كويټه

که په روژه کښي څوک دخپلي ښځي اویادخپل اشنای ناړي تیري کړي قضا او کفاره دواړه پرسته .(٤٧)

که څوک په روژه کښي په هیره سره خوراک ،څښاک یا جماع وکړي باره یې فکر سو چي روژه خومي ماته سوه باره یې پسي وخوړل کفاره نسته باندي .(٤٨)

که چا قی وواهه باره یې ګمان سو چي روژه مي ماته سوه نویې پسي وخوړل کفاره نسته باندي او که دی په دې پوهیدئ چیر روژه مي نه ده ماته بیایې هم وخوړل کفاره هم ورباندي سته (٤٩).

که څوک احتلام سو (شیطان خطایستی ) باره یې ګمان سو چي روژه به مي ماته سوې وي نو قصدا پسي وخوړل کفاره نسته باندي (٥٠)

---

٤٧-فتاوی الهندیة(عالمګیري): ١ / ٢٠٣ الباب الرابع فیمایفسدوفیمالایفسد چاپ: رشیدیة کویټه
٤٨- فتاوی الهندیة(عالمګیري): ١ / ٢٠٦ باب مایوجب لقضاء والکفارة چاپ: رشیدیة کویټه
٤٩- فتاوی الهندیة(عالمګیري): ١ / ٢٠٦ باب مایوجب لقضاء والکفارة چاپ رشیدیة کویټه
٥٠- فتاوی الهندیة(عالمګیري): ١ / ٢٠٦ باب مایوجب لقضاء والکفارة چاپ رشیدیة کویټه

که څوک په قصده خپل ځان ژوبل کړي اوداسي حالت ته ورسیږي چي نورنو روژه نیول ورته ګرانه سي باره یې وخوري قضا او کفاره دواړه پرسته .(۵۱)

په روژه کښي دسمال یا پټو لندول او پرځان اچول بلاکراهت روادي .(۵۲)

که څوک دروژې په حالت کښي دلمبېدوپرمهال په اوبو کښي ګوز یا پسکی واچوي روژه یې نه ده ماته البته له اړتیا پرته داسي کول روژه مکروه کوي.(۵۳)

په روژه کښي هرګړی لمبېدل هم روادي .(۵۴)

کوشني ته په تی ورکولو سره روژه اوودس نه ماتیږي.(۵۵)

---

۵۱- فتاوی الهندیة(عالمګیري):۱ /۲۰۶ باب مایوجب القضاء والکفارة چاپ رشیدیة کویټه

۵۲- فتاوی الهندیة(عالمګیري):۱ /۱۹۹ الباب الثالث فیمایکره للصایم ومالایکره چاپ رشیدیة کویټه ،التاتارخانیه :۳/۳۹۸رشیدیه چمن

۵۳- فتاوی الهندیة(عالمګیري):۱ /۱۹۹ الباب الثالث فیمایکره للصایم ومالایکره چاپ رشیدیة کویټه

۵۴- فتاوی الهندیة(عالمګیري):۱ /۱۹۹ الباب الثالث فیمایکره للصایم ومالایکره چاپ رشیدیة کویټه ، دارالعلوم دیوبند :۶ /۴۰۷ چاپ:حقانیه ملتان

۵۵-فتاوی دارالعلوم دیوبند :۶ /۴۰۷ چاپ:حقانیه ملتان

دروژې پرمهال ځوان سړي ته دښځي سره غاړه په غاړه کيدل مکروه دي. (٥٦)

که چيري تی ورکونکې یا کوشنی لرونکې(حملداره) ښځه پرځان یا داولاد په هلاکت وبيريږي روژه به خوري بیابه يې صرف قضاراوړي کفاره نسته ورباندي. (٥٧)

کله چي ښځي ته دورځي مهال حيض يانفاس راسي روژه ه به خوريامساک به نه کوي البته په پټه به يې خوريمګرکه ښځه دورځي مهال پاکه سي یاکوشني بالغ سي یاکافراسلام راوړي یا مسافرمقيم سي يامريض جوړسي ياليونی پرسدسي په دغه ټولو صورتونوکښي به پاته ورځ امساک کوي دنورو سره دمشابهت په خاطر به شی نه خوري او دغه امساک يې په روژه کښي نه حسابل کيږي . (٥٨)

---

٥٦-فتاوی الهندية(عالمګيري): ١ /٢٠٤ الباب الرابع فيما يفسد وفيما لايفسد چاپ: رشيدية کويټه

٥٧-فتاوی الهندية(عالمګيري): ١ /٢٠٦ الباب الخامس فی الاعذارالتی تبيح الافطار چاپ: رشيدية کويټه

٥٨- فتاوی التاتارخانيه: ٣/٤٢٨ الفصل العاشرچاپ: رشيديه وعلوم اسلاميه چمن فتاوی الهنديه (عالمکيري) : ١ /٢١٤ المتفرقات چاپ: رشيدية کويټه ،طحطاوي علی المراقي : ٣٧٠

پاته ورځ امساک کول سره دقضاپرهر هغه چاواجب دی چي بې عذره روژه وخوري یا ځني وخوړل سي مثلا یوسړی په دې ګما ن خوراک وکړي چي ماخوستن دی لیکن هغه سپېدې راختلي وې یا یې فکروکړچي لمرلوېدلی دی روژه یې ماته کړه هغه لالمر ولاړوونه وولوېدلی (۵۹)

که څوک په روژه کښي دونه سخت وږي یا تږي سي چي پرځان باندي وبیرېږي اویا یې دماغي توازن متاثره هغه ته روژه خوړل روادي.(۶۰)

که څوک دسفرشروع کولوورانديي روژه وخوري بیاسفرته روان سي قضا او کفاره دواړه پرسته اوکه دورځي مهال سفرته روان سوروژه یې ونه خوړل ورروسته یو کارورپېښ سو بیرته کورته راغی روژه یې په کورکښي وخوړل باره بیرته روان سوپردغه سړي باندي قضا او کفاره دواړه لازم دي .(۶۱)

---

۵۹- فتاوی التاتارخانیه :۳/۴۲۸ الفصل العاشرچاپ:رشیدیه وعلوسم اسلامیه چمن ،الموسوعة الفقهیة الکویتیة :۲۸/۸۰ چاپ: ارګ بازارقندهار

۶۰-فتاوی الهندیة(عالمګیري):۱/۲۰۷ الباب الخامس فی الاعذارالتی تبیح الافطار چاپ: رشیدیة کویټه ، قاموس الفقه :۴/۲۸۹ چاپ زمزم پبلشرز کراچي فتاوی التاتارخانیه :۳/۴۰۹ الفصل السابع چاپ:رشیدیه وعلوم اسلامیه

۶۱-فتاوی التاتارخانیه :۴۰۳،۳/۴۰۶ الاسباب المبیحه للفطر چاپ:رشیدیه کویټه، وعلوم اسلامیه چمن ،فتاوی حقانیه :۴/۱۷۲، ۱۸۸ باب القضا

څوک چې دفدیې اداکولووس نه لري هغه دیاستغفار ډیرډیر وایي اودانیت دي وکړي چې که خدای تعالیٰ وس راکی فدیه به اداکوم (۶۲)

که چا څوروژې خوړلي وي کفاره یې تراوسه نه وي اداکړې فقط یوه کفاره اداکول دټولولپاره کافي ده اوبس. (۶۳)

که ښځي ته دکفارې اداکولوپرمهال حیض راسي کفارې ته یې تاوان نه رسیږي. (۶۴)

که حایضه ښځه په روژه کښي یابیله روژې دحیض بندولو دوا وخوري او حیض یې بندسي روژه نیول اولمونځ کول وربانديفرض دی دپاکي ښځي حکم لري اګرکه داسي کول دطب له لحاظه صحت ته تاوان رسوي بایدډه ډه ترې وسي. (۶۵)

---

والکفارة چاپ: دارالعلوم حقانیة ، فتاوی الهندیة(عالمګیري): ۱ /۲۰۶ الباب الخامس فی الاعذارالتی تبیح الافطار چاپ: رشیدیة کویټه ،

۶۲- آپ کي مسایل اوران کاحل: ۲۰۲ /۴ چاپ: مکتبه لدهیانوي

۶۳- فتاوی الهندیة(عالمګیري): ۱ /۳۱۵ چاپ: رشیدیة کویټه ، فتاوی التاتارخانیه : ۳/ ۳۹۴ وجوب الکفارة چاپ: رشیدیه کویټه، وعلوم چمن ،

۶۴- البحر الرایق : ۱/۱۹۴ چاپ: ایچ ایم سعید ،فتاوی حقانیه : ۴/۱۸۰ چاپ: دارالعلوم حقانیه ،روزی کي مسایل: ۷۳ چاپ: بیت العمار کراچي

۶۵- کتاب الفتاوی : ۲ تیسرا حصه / ۲۸۴ چاپ: زمزم پلشرز، فتاوی حقانیه : ۴/۱۵۸ چاپ: دارالعلوم حقانیه

که چیري حاملې ښځي ته دحمل پرمهال وینه راسي روژه یې نه ماتیږي.(٦٦)

که دچا داګمان وو چي سپېدې لا نه دي چولي خوراک یایې څښاک وکړوروسته ورته معلومه سوه چي سپېدې چولي وې روژه ماته سوه البته صرف یوه قضاراوړل باندي لازمه ده .(٦٧)

که څوک درمضان فرضي روژوڅخه پرته کومه بله روژه قصدا وخوري پرهغه باندي قضاسته کفاره نسته .(٦٨)

دسختي ناروغي له کبله هم روژه خوړل روا ده صرف قضا لازمیږي.(٦٩)

که څوک په یوه ملک کښي روژې پوره کړي بیا چي کله خپل ملک ته راسي روژه لانه وي ختمه سوې نو پرداسي سړي باندي

---

٦٦- فتاوی حقانیه : ۴/١۵٧چاپ: دارالعلوم حقانیه

٦٧- فتاوی حقانیه : ١/٦۴٨چاپ: دارالعلوم حقانیه

٦٨- الدرالمختار۴٠۴/٢ ،چاپ:سعیدمراقي الفلاح٣٧٠چاپ:رشیدیه آپ کي مسایل :۴/۶١۵چاپ: لدهیانوي ،کتاب الفتاوی :٢/٣١١ چاپ: زمزم

٦٩- فتاوی الهندیة(عالمګیري):١/٢٠٧ چاپ: رشیدیة کویټه

دخلګو سره دمشابهت په خاطرروژې نیول واجب دي خوړل يې جایز نه دي البته داروژه يې نفلي حسابل کیږي.(۷۰)

که دچا غالب ګمان داوي چي دروژې نیولو له کبله مي مرض نور هم پسي زیاتیږي نو ده ته دروژې خوړل جایزدی دډاکټر پوښتني ته اړتیانسته.(۷۱)

که دچازړه(معده ) راویشیږي یااړږی راوکاږي تروې یاترخې اوبه يې خولې ته راسي پدې سره روژه نه ماتیږي اګرکه تیري سي .(۷۲)

روژه مات وختي کول مستحب دی ناوخته کول نه دی پکار یعني چي څنګه لمر ولویدی فورابایدروژه مات وسي البته که وریځ وه بیايې نو لږناوخته کول پکاردي او پیشلمی ناوخته کول مستحب دی بې خي ډیرهم نه چي روژه شکمنه سي.(۷۳)

که څوک دشپې مهال جنب سي پشلمي ته غسل ونه کړي نودي دخوراک څښاک یعني پیشلمي لپاره اودس وکړي او یادي

---

۷۰-ردالمحتار: ۲/ ۳۸۴چاپ:سعید ، فتاوی عثماني : ۱۷۶،۱۷۷/ ۲ مکتبة المعارف کراچي آپ کي مسایل : ۶۴۷،۶۴۶/ ۴چاپ:مکتبه لدهیانوي

۷۱- فتاوی الهندیة(عالمګیري):۱/ ۲۰۷ چاپ: رشیدیة کویټه

۷۲- فتاوی رشیدیه کامل: ۳۷۷چاپ: اداره اسلامیات ،

۷۳- فتاوی الهندیة(عالمګیري):۱/ ۲۰۰ چاپ: رشیدیة کویټه

لږترلږه خوله اولاسونه پرېولي ورسته دي غسل وکړي که چیري وخت پرکم سوسپېدې وچولې ده لاغسل نه وو کړی روژې ته یې تاوان نه رسیږي غسل دي په روژه کښي وکړي البته ښه داده چي دجنابت ورسته بلاوجه غسل ونه ځنډه وي.(۷۴)

ښځه که دروژې په حالت کښي سامان کښیږدي روژه یې ماتیږي البته صرف قضا وربانديستهاو که یې مخکي ایښې وي په نس کښي یاته وي روژه یې نه ماتیږي.(۷۵)

روژه په خورما یا اوبوسره ماتول ثواب اوبرکت لري .(۷۶)

دروژې په حالت کښي که چا دجنابت څخه غسل کاوه نو دپزي اوخولې پرېوللوپرمهال دي احتیاط کوي.(۷۷)

که څوک دلمرلوېدوورسته روژه مات وکړي وروسته په طیاره کښي سپورسي په هوا کښي لاهم لمرنه وي ډوب سوی دغه سړی

۷۴- فتاوی الهندیة(عالمګیري):۱/۲۰۰ چاپ: رشیدیة کویټه ،بدایع الصایع:۳۸،۱/۱۵۱، کتاب الفتاوی :۲تیسراحصه /۲۹۹ چاپ: زمزم پلشرز

۷۵-امدادالفتاوی :۲/۱۵۹ چاپ: مکتبه سید احمد شهید بالمقابل درالعلوم حقانیه اکوړه خټک .

۷۶- قاموس الفقه : ۴/۲۹۵ چاپ زمزم پبلشرز کراچي

۷۷- فتاوی الهندیة(عالمګیري):۱/۱۹۹ چاپ: رشیدیة کویټه

باید ترهغه مهاله امساک وکړي ترڅوپه هواکښې هم لمرډوب سي.(٧٨)

که څوک په طیاره کښې سپوروي لاندي دمځکي په اعتبارسره دماښام وخت راداخل سوی وي خو په هوا کښې لا هم لمر ولاړوي دغه سړی به په هوا کښې ترلمرلوېدو پوري انتظارکوي روژه به نه ماتوي که یې ماته کړي قضا اوکفاره دواړه پرسته.(٧٩)

دماښام لمونځ وختي کول مستحب کاردی خودروژه مات کولو لپاره یې ځنډول جایز دی خودونه نو هم نه چي بیخي داسمان ستوري راوخیژي.(٨٠)

---

[٧٨] – فتاوی حقانیه : ۴/۱۴۴چاپ:دارالعلوم حقانیه کتاب الفتاوی : ۲تیسراحصه /۲۹۹چاپ: زمزم پلشرز ،

[٧٩] – کتاب الفتاوی : ۲تیسراحصه /۳۰۶چاپ: زمزم پلشرز،فتاوی حقانیه : ۴/۱۵۵چاپ:دارالعلوم حقانیه ،آپ کي مسایل : ۴/۵۵۶ چاپ: مکتبه د(روزی کي مسایل کا انسایکلو پیډیا) کتاب په : ۲۱۰مه صفحه چاپ: بیت العمار کښې دمفتي محمد انعام الحق قاسمي صاحب دامسأله چي په غروب کښې دمځکي دوخت اعتباردی نه دقضا صحي نه ده اودعصردجمهوروفقهاوودفتوا څخه مخالفه ده او حوالې یې هم دفلسفې په ځینو کتابوباندي ورکړي دي ښایي نوموړي رجوع کړې وي اویایې وکړي. والله اعلم.

[٨٠] – کتاب الفتاوی : ۲/ ۳۰۵چاپ: زمزم پلشرز، کبیري ص: ۳۳۷،الجامع للترمذي،حدیث نمبر: ۶۹۹ وصحیح البخاري : ۱/۲۶۳، المسلم : ۱/۳۵۰محشي

دجمعي (جماعت) دلمانځه لپاره په مسجد کښي روژه مات کول جايزدی البته دمسجد دپاک ساتلو لپاره يوبندوبست کول پکاردي.[81]

دروژماته بعده هم دراتلونکي ورځي دروژې نيت کول صحي دی اوپيشلمۍ کول پخپله نيت دی ښه خوداده چي ترسپېدو مخکي دراتلونکي روژې نيت وسي که چاترسپېدومخکي نيت نه وي کړي نودشرعی ورځي تر نيمايي پوري لانيت کولای سي شرعي ورځ دسپيدوڅخه ترلمرلوېدوپوري ده عرفي ورځ دلمر ختو څخه تر لمر لوېدو پوري ده دشرعي ورځي نيمايي دعرفي ورځي دنيمايي څخه ۴۰ دقيقې دمخه راځي.[82]

پيشلمۍ کول ثواب او برکت لري او په بدن کښي دروژې نيولوځواکمنتيا پيداکوي البته که څوک پيشلمۍ ونه کړي

---

[81]- کتاب الفتاوی: ۲تيسراحصه/۳۰۱،۳۰۰چاپ: زمزم پلشرز،

[82]- فتاوی الهندية(عالمگيري): ۱/ ۱۹۵ چاپ: رشيدية کويټه
ردالمحتار: ۲/۳۷۷، کتاب الصوم، آپ کي مسايل اوران کا حل: ۴/ ۵۴۵ مکتبه لدهيانوي مراقي الفلاح مع الحاشية الطحطاوية ص: ۳۵۲،۳۵۳چاپ: مير محمد کتب خانه.

هم يې روژې ته تاوان نه رسيږي دشپې چې بد يږي دروژې نيت دي وكړي اوبس. (۸۳)

ترڅوچي دمريض دجوړېدواميد وي ترهغو پوري دروژې په بدله كښي فديه وركول نه صحي كيږي كه جوړسواو دونه وخت يې پيداكې چي دروژوقضا راوړي نوقضاراوړل باندي واجب ده او كه يې دونه وخت هم نه كې پيدا چي قضا پكښي راوړي نونه قضا پرسته او نه فديه بلكه دفديې وصيت كول ورباندي لازم دی كه يې وصيت هم ونه كړ وفات سو نو داخروي مسوليت څخه دژغورني په موخه دي دده وارثان دده دروژو فديه اداكړي (۸۴).

كه مسافر په سفر كښي روژې خوړلي وې خوسفر يې اږد سو تر مرګه پوري يې دونه وخت اقامت ونه كړ چي دروژو قضا پكښي راوړي په همدغه حالت كښي مړسو پر ده باندي نه قضا واجبه ده او نه دفديې وصيت(۸۵)

۸۳- فتاوى الهندية:۱/۱۹۵ چاپ: رشيدية كويټه مراقي الفلاح مع الحاشية ص: ۳۵۴چاپ: مير محمد كتب خانه آپ كي مسايل: ۴/۵۴۸،۵۴۷

۸۴-آپ كي مسايل: ۴/۵۹۳ چاپ: مكتبه لدهيانوي

۸۵- فتاوى الهندية(عالمكيري):۱/۲۰۷ چاپ: رشيدية كويټه

که څوک دسفر پرمهال دروژې نیت وکړي ویې نسي مګربیرته یې په سفر کښې ماته کړي کفاره نسته بلکه قضا باندي لازمیږي.(۸٦)

که مسافر مقیم سو دروژو قضا به راوړي فدیه ورکول نه صحي کیږي(۸۷)

که څوک په سعودي یابل ملک کښې پوره دیرش ورځي روژې ونیسي بیاخپل ملک ته راسي په خپل ملک کښې یې لاهم روژه وي داسړی به یوه روژه بله هم نیسي چي ټول ټال ۳۱روژې کیږي که یې ونه نیول بلکه وې وخوړلدهغې یوې ورځي قضابه راوړي ځکه چي الله تعالیٰ فرمایي : فمن شهد منکم الشهر فلیصمه. دارایه په عربو علماووکښې دډاکټروهبه الزحیلي دهندوستان په علماوو کښې دمفتي عبدالرحیم لاجپوري رحمه الله او دپاکستان په علماوو کښې دمفتي محمد تقي العثماني ده. (۸۸)

که څوک په خپل ملک کښې روژه نیول شروع کړي بیا بل ملک ته ولاړسي هلته په ۲۹باندي میاشت ولیدل سي اواخترسي اوپه

---

٨٦- احسن لفتاوی: ۴/ ۴۵۸چاپ: ایچ ایم سعید
۸۸- فتاوی الهندیة(عالمګیري): ۱/ ۲۰۷ چاپ: رشیدیة کویټه
۸۸- کتاب الفتاوی : ۲تیسراحصه/ ۲۹۶چاپ: زمزم پبلشرز، لفقه لاسلامي وادلته ۲/۶۰۷: مرتب

خپل ملک کښي يې په ۳۰باندي اخترسي دده روژه پوره بلل کيږي دروژې په اخر کښي چي هرځای وي دهغه ځای احکام په ده باندي جاري کيږي ديوې ورځي قضاهم په ده باندي نسته .(۸۹)

که چا په خپل ملک کښي صرف ۲۸ روژې ونيولې بيا سعودي ته ولاړی هلته روژه بيخي ختمه سوې وه داسړی به ددوو روژو قضا راوړي .(۹۰)

اوبه که ترخې وي اوکه تروې په روژه کښي اودس په کول يا په خوله رغړول جايزدي روژې ته تاوان نه رسوي.(۹۱)

په روژه کښي سرښ په ناړو لندول مکروه دي لکه ځيني کسان چي دلفافې بندولولپاره داسي کوي که ستوني ته شوه سي روژه هم ماتوي. (۹۲)

روژه په هرهغه شی باندي ماتيږي چي بدن ته دننه سي اوکه دبدن څخه ووزي په هغه سره روژه نه ماتيږي البته صرف دقي صورت مستثنیٰ دی ځکه نو دويني په ورکولويا کښلوروژه نه

---

۸۹- کتاب الفتاوی : ۲تيسراحصه /۲۹۰چاپ: زمزم پلشرز،
۹۰-فتاوی عثماني:۲/ ۱۷۷ مکتبة المعارف
۹۱- کتاب الفتاوی : ۲تيسراحصه /۲۸۲چاپ: زمزم پلشرز،
۹۲- کتاب الفتاوی : ۲تيسراحصه /۲۸۲چاپ: زمزم پلشرز،

ماتیږي داکه د تیسته لپاره وي او د که بل شي لپاره وي البته د ضرورت پرته وینه کښل یا ورکول مکروه دي. (۹۳)

په روژه کښې شونډان سره کول جایزدي ځکه چې شونډان دبدن دباندي برخه ده که چیري خولې ته دننوتو بیره وه بیا نو مکروه دي(۹۴)

که څوک په بس کښې وي او دروژې ماتولو لپاره کوم شی نه وي نو که روژه مات دیوخوراکي شي ترپیدا کیدو پوري وځنډوي پروانه لري (۹۵)

دقضایي روژوفدیه په یوه ځای یوه مسکین ته ورکول جایزدي البته ښه داده چې دیوې ورځي دروژې فدیه یوه مسکین ته ورکړل سي خویوه مسکین ته به تریوې فدیې کم نه ورکوي(۹۶)

دیوې میاشتي ددیرشو ورځو فدیه ۵۲ نیمي کیلوغنم کیږي او ددرو میاشتو دنوي ورځوفدیه ۱۵۷.۵ کیلو غنم کیږي له دې څخه نور حساب په خپله وکړئ! دلمانځه فدیه هم دسرسایې هومره ده دیوې شپې او ورځې ټول لمونځونه دوترو په ګډون

---

۹۳- کتاب الفتاوی: ۲ تیسرا حصه/۲۸۲ چاپ: زمزم پلشرز،
۹۴- کتاب الفتاوی: ۲ تیسرا حصه/۲۸۲ چاپ: زمزم پلشرز،
۹۵- کتاب الفتاوی: ۲ تیسرا حصه/۳۰۲ چاپ: زمزم پلشرز،
۹۶- احسن الفتاوی: ۴/۴۳۱ چاپ: ایچ ایم سعید

شپږدي پنځه فرض يو واجب نو ديوې ورځې دلمنځو فديه لس نيم كيلو غنم كيږي پدې حساب سره نوديوې مياشتې دلمنځو فديه ۳۱۵ كيلوغنم سوه او ديوه كال دلمنځونوفديه ۳۷۸۰ كيلو غنم كيږي(۹۷)

دځوروژوفديه يوه مسكين ته وركول هم رواده البته يوه مسكين ته تريوې فديې كم وركول روانه دي(۹۸)

څوک چې دروژې په مباركه مياشت كښې بې له عذره برملا دخلكو په مخكې په قصده روژه خوري داسې سړى فاسق فاجراو داسلام دښمن بلل كيږي دداسې سړي وژل روادي ترڅو بل څوک داسې جرأت ونه كړي البته دمسلمان ځواكمن اميراو خليفه په امراوحكم سره يې وژل روادي نه په خپل سر.(۹۹)

---

۹۷-آپ كي مسايل: ۴/۶۰۱ چاپ: مكتبه لدهيانوي ، ردالمحتار: ۲/ ۴۷۸، ۷۲ چاپ: سعيدجوهرة: ۱/ ۱۴۷ رشيديه

۹۸- كتاب الفتاوى: ۲تيسراحصه/۲۹۱چاپ: زمزم پبلشرز،محمودية: ۱۰/۱۷۷، الدرالمختار: ۲/۷۴ سعيد

۹۹- البحرالرايق: ۱ / ۲۹۹ چاپ: رشيدية، فتاوى المتانة د :علامة بوبكاني: ۲ /۳۶۵ چاپ: عمريه كويټه محمودية: ۱۰/۱۶۳ چاپ: اد ارة الفاروق

دځوروژوفدیه په یوه ځای دروژې په سر یا په پای کښې اویادهري ورځي دا جلا جلا اداکول جایزده هرډول چې یې اداکوي هغسې صحي ده کومه پابندي نه لري .(۱۰۰)

په تی ورکولوسره دښځي اودس او روژه نه ماتیږي .(۱۰۱)

که څوک د تندي له کبله روژه وخوري قضاوربانديي سته کفاره نسته.(۱۰۲)

که یوسړی زیات تږي وي روژه خوړل ورته روا ده که یې ونه خوري د تندي له کبله ومري ثواب یې سته .(۱۰۳)

که خاوند روژه نه وي نیولې دښځي یې روژه وي باره خاوند کوروالي ورسره وکړي دښځي یې دافکرسي چې په روژه

---

[100] - فتاوی الهندیة(عالمگیري):۱ /۱۰۷ چاپ: رشیدیة کویټه ،محمودیة :۱۰/۱۹۰چاپ: ادارالفاروق

[101] البحرالرایق:۲/۲۷۸چاپ:سعیدروزی کي مسایل ک انسایکلو پیډیا :۹۰چاپ: بیت العمار

[102] - فتاوی الهندیة(عالمگیري):۱ /۱۰۷ چاپ: رشیدیة کویټه

[103] - فتاوی دارالعلوم دیوبند :۶ /۴۲۴ چاپ: حقانیه ملتان

کښې ښايي کوروالي کول جا يز وي په دغه صورت کښې په ښځې باندې قضا او کفاره دواړه لازم دي(١٠۴)

که چا پیشلمی نه ووکړی ترماپښینه پوري شکمن وو چې روژه ونیسم که یا ماپښین یې روژه ماته کړه قضا وریاندي ستـه نه کفاره(١٠٥)

دهري ورځي روژې نيولولپاره جلاجلا نيت کول ضروري دی د رمضان د ټولي مياشتي لپاره يو نيت بسنه نه کوي(١٠٦)

که سهارد لمرختوپرمهال ديوسړی دا فکرسوچي لمرولوېدی نو یې روژه وخوړل وروسته لمراوختی باره یې فکرسو قضاسته کفاره نسته(١٠٧)

په روژه کښې په قصده داګريتې ،سپلنيو،عودوياديته ورته شيانودود کشول جايزنه دي که دادودستوني ته شوه سو روژه

---

- فتاوى الهندية(عالمگيري) : ١/ ١٩٥ چاپ: ايچ ايم سعيد
- فتاوى دارالعلوم ديوبند : ٦/ ٣۴٦ چاپ: حقانيه ملتان

ماتوي البته دعطرولګول اوبويول پروانه لري که څه هم په قصده وي([108])

دلوکولولپاره دروژې خوړل روانه دي ځکه داشرعي ضرورت نه بلل کيږي([109])

دزهرجن حيوان په چيچولواوخوړلوسره دروژاتي روژې ته تاوان نه رسيږي([110])

دښځولپاره که محرم حافظ وو نو ښکارده چي په هغه پسي په کور کښي تراويح وکړي او حافظ وي خو نامحرم وي نو کولای سي چي تربردې شاته تراويح پسي وکړي او که دا هم نه وي نودي دالم ترکيف تراويح دي يوازي وکړي دښځو لپاره هرهغه طرزصحي دي چي پرده ناکه وي.([111])

---

[108]-کتاب الفتاوی : ۲تيسراحصه/۲۷۹،۲۷۸چاپ: پبلشرزکراچي بحواله ردالمحتار: ۲/۳۶۶چاپ:سعيد

،محمودية: ۱۵۶،۱۵۸/۱۰چاپ:ادارة الفاروق مراقی الفلاح ص: ۶۵۹چاپ: قديمي قاضي خان: ۱/۲۰۸رشيدية

[109]-فتاوی حقانية: ۴/۱۶۱چاپ: دارالعلوم حقانية اکوړه ختهک

[110]-فتاوی حقانية: ۴/۱۶۱چاپ: دارالعلوم حقانية اکوړه ختهک ،الاختيارلتعليل المختار: ۱/۱۳۳بيروت

[111]-آپ کي مسايل: ۴/۱۹۸چاپ: مکتبه لدهيانوي

محرم هرهغه چاته ویل کیږي چي دهمیشه لپاره نکاح ورسره حرامه وي .(١١٢)

شل رکعته تراویح په یوه نیت کول هم صحي دي ځکه دملا الله اکبر ته انتظار کول په خپله نیت دی .(١١٣)

په ناسته تراویح کول بې له عذره هم جایز دي البته ثواب یې دولاړي په نیمی دی .(١١٤)

تراویح مؤکدسنت دیهم دنارینه وولپاره او هم دښځینه ولپاره .(١١٥)

تراویح د مطلق لمانځه یانفلوپه نیت سره کول هم صحي دي.(١١٦)

---

[112] الفتاوی التاتارخانیة : ٣/ ٤٧٥ رشیدیة وعلوم اسلامیة چمن

[113] – الفتاوی السراجیة : ١١٩ چاپ: المکتبة المعروفیة ، البحر الرایق : ١ /٢٩٤ رشیدیة

[114] – الفتاوی السراجیة وحاشیتها : ١١٩ چاپ: المکتبة المعروفیة ، البحر الرایق :٢/٦٨ رشیدیة

[115] – الفتاوی السراجیة : ١١٩ چاپ: المکتبة المعروفیة، الحاوي القدسي : ١ /٢٤٧ چاپ: دارالنوادردمشق

[116] – المحیط البرهاني : ٢ /١٨٤ بیروت ، بدایع الصنایع : ١ /٢٨٨ بیروت ، – البحر الرایق : ١/١٩٦ رشیدیة

تراویح په جمع کول واجب کفایي دی که ټولو پرېښودی ټول ګنهګاره دي.(۱۱۷)

اته رکعته تراویح کول جایز نه دي .(۱۱۸)

که دخپل محل په مسجد کښې دختم تراویح نه کېدلې نوبل مسجد ته دختم تراوولپاره تلل جایز دي.(۱۱۹)

په مزدوري یا تنخوا باندي تراویح ورکول هم ناجایز دي او اجرت یا مزدوري پر اخستل هم ناجایز ده اخستونکي او ورکونکي دواړه ګنهګاران دي ځکه چي پر طاعاتو او عباداتو باندي اجرت اخستل نارواده البته متاخرینوعلماوودضرورت په وجه استاذي ، امامت ، اذان ، دیني ښوونه اوروزنه وغیره له دغه حکم څخه مستثنیٰ کړي دي په تراویح کید قران شریف اورول فقهاوپه دیني ضروریاتو کښې نه راولي ځکه چي تراویح دالم ترکیف داهم کیږي کوم حافظ چي د تراووپه عوض کښې پیسې غواړي یا پیسې ټاکي په هغه پیسي لمونځ کول مکروه تحریمي دی ترهغه دالم ترکیف تراویح کول ښه دي که دحافظ

۱۱۷- الحاوي القدسي: ۱/ ۲۴۹ چاپ: دارالنوادردمشق
۱۱۸- آپ کي مسایل: ۴/۱۶۴ چاپ: مکتبه لدهیانوي
۱۱۹- البحر الرایق: ۲/ ۷۴ رشیدیة ، آپ کي مسایل: ۴/۱۸۷ چاپ: مکتبه لدهیانوي

داخيال نه وو چي پيسې به اخلم او بيا يو چا يو شى يا پيسې په هديه کښي ورکړې نواخستل يې صحي دي اوپه کوموسيمو کښي چي د پيسو اخستل رواجوي که يې ورنه کړي خوابده وي هلته دهديې اخستل هم ناجايز ده هذاماجمعته من عبارت الاکابرومفاهيمهم نورالله مراقيدهم ومقابيرهم.(١٢٠)

په ږيږي وهونکي او خريوونکي امام پسي که حافظ وي اوغيرحافظ لمونځ او تراويح کول مکروه تحريمي دي .(١٢١)

دختم په تراوو کښي امام ته پکارده چي يو ځل په زوره بسم الله الرحمن الرحيم پرته دسورة النمل دبسم الله څخه ولولي ترڅو دمقتديانوپه حق کښي هم قران کريم ختم سي که يې ونه وايي نو دحافظ په حق کښي خو قران کريم ختم سو ليکن دمقتديانو په حق کښي لاهم ناقص دی ځکه چي بسم الله که دهرسورت

---

١٢٠-تاليفات رشيدية: ٣٢٤چاپ: اداره اسلاميات لاهور،ردالمحتار : ٥ /٣٣٤چاپ :بيروت ،آپ کي مسايل:٤/١٨٨چاپ:مکتبه لدهيانوي،فتاوى دارالعلوم ديوبند : ٣٦٥،٣٦٣/٢دارالاشاعت کراچي

١٢١-آپ کي مسايل:٤/١٨٨چاپ:مکتبه لدهيانوي

جزبالاتفاق نه ده نو دقران كريم داياٰتونو څخه يو أيت خو بالاتفاق ده .(١٢٢)

ټوله روژه تراويح كول ځانته مؤكد سنت دي او په تراووكښي يو ځل قران شريف ختمول ځانته عليده سنت دى هغه خلګ چي په لس پنځلس ورځو كښي قران شريف په تراوو كښي ختم كړي دختم سنت يې اداسوالبته دتراووسنت يې لاپرغاړه پاته دى دروژې ترپايه پوري به تراويح كوي تراويح به نه پريږدي يا دختم او يا دالم تركي دا ځكه چي تراويح نه ختميږي كه څوك يو سنت اداكړي بل سنت بې عذره پريږدي ګنهګاره بلل كيږي.(١٢٣)

يادونه :زموږپه سيمه كښي متاسفانه ځيني امامان ددنيوي ګټولاس ته راوړلوپه خاطردالم تركي پرتراووباندي هم ختم جوړه وي او وايي نو رنو تراويح ختمي سوې حال داچي تراويح

---

١٢٢- فتاوى الهندية(عالمګيري):١ /١١٧ ،١١٨ چاپ: رشيدية كويټه آپ كي مسايل:١٨٧/٤ چاپ:مكتبه لدهيانوي ،البحرالرايق :١ /٢٣٠ چاپ: رشيديه مجموعة الفتاوى لكنهوي : ........ چاپ:ديوبند وغيرهامن الكتب

١٢٣- فتاوى الهندية(عالمګيري):١ /١٢١ چاپ: رشيدية كويټه آپ كي مسايل:١٨٧/٤ چاپ:مكتبه لدهيانوي ، الجوهرة النيرة : :١ /٣٨٧ رشيدية

دروژې ترپایه پوري کول سنت دي داکه دالم ترکي وي اوکه دختم.

دراجح قول له مخي په نابالغ هلک پسي تراوېح کول جایز نه دي[۱۲۴]

په یوه شپه په تراوو کښي دقران شریف ختمول صحي نه دی[۱۲۵]

په یوه شپه دوه ځایه مکملي تراویح ورکول جایز نه دي [۱۲۶]

په تراوو کښي قران شریف دونه تیز ویل چي دحروفوادا کولو ته هیڅ پام لرنه کیږي اوداډول چابکي تراویح کول ناجایزدي[۱۲۷]

---

۱۲۴- فتاوی الهندیة: ۱/ ۱۱۷ چاپ: رشیدیة کویټه ، محیط البرهاني: ۲/ ۳۹۵ بیروت فتاوی السغدي : ۱/ ۹۶ بیروت،الجوهرة النیرة : ۱/ ۲۴۱رشیدیة

۱۲۵-قاموس الفقه : ۲/ ۴۵۱چاپ: زمزم پبلشرز

۱۲۶- فتاوی الهندیة(عالمګیري): ۱/ ۱۱۶ چاپ: رشیدیة کویټه، البحرالرایق : ۲/۷۴چاپ: رشیدیه

۱۲۷- فتاوی الهندیة(عالمګیري): ۱/ ۱۱۷ چاپ: رشیدیة کویټه

که چیري په تراوو کښي دحافظ څخه یوڅوایاتونه پاته سي بیرته یې راګرځول ښه کار دی په داغه رکعت کښي یا په بل رکعت کښي(۱۲۸)

که څوک دالم ترکي په تراووکښي یا په نورو لمنځوکښي په هیره سره ځیني سورتونه شا ومخ بې ترتیبه ووایي لمونځ یې مکروه لا نه دی کې په قصده ووایي بیانولمونځ صرف مکروه کیږي فاسد یږینه .(۱۲۹)

که امام ددوورکعتوتراوونیت وکړی په دوهم رکعت باندي نه کښېنستیدریم او څلورم یې هم پسي وکړی په اخر کښي یې سجده سهوه وکړه دصحي قول له مخي په دغه صورت کښي صرف دوه رکعته تراویح صحي سوې اوبس.(۱۳۰)

په تراوو کښي دهرو څلورو رکعتوبعده دڅلوروررکعتو په اندازه کښېنستل مستحب کار دی البته که چیري په خلګو باندي دونه

---

[۱۲۸]- فتاوی الهندیة(عالمګیري):۱/ ۱۱۸ چاپ: رشیدیة کویټه

[۱۲۹]- الدرالمختار مع الشامي :۱/ ۵۴۶، ۵۴۷ چاپ: سعید ،آپ کي مسایل :۴ /۱۹۲ مکتبه لدهیانوي

[۱۳۰]البحر الرایق : ۲ / ۷۲ چاپ: رشیدیة، آپ کي مسایل :۴/ ۱۹۲ چاپ: مکتبه لدهیانوي

اندازه ناسته غمېدله بیا دي تردې لږکښېني مګرییخي دونه لږ ناسته هم نه ده په کار چي خلک اوبه لا نه سي پکښي چښلای په دغه ناسته کښي دخلګو اختیار دی که تسبیحات وایي او که دغسي چپ کښیني.(۱۳۱)

ترښه اوازلرونکي حافظ هغه ښوک بهتر دی چي توري او حروف ښه اداکوي اګرکه داوازله خوا پاته وي.(۱۳۲)

په یوه مسجد کښي دوه ځلي تراویح کول مکروه دي(۱۳۳)

که یو امام فرض لمونځ ورکړي اوبل تراویح ورکړي پروا نه لري او داډول که چیري دوونفرو په ګډه تراویح ورکولې نوپه دوورکعتودې دابل ته نه پرېږدي بلکه ځلور دي پوره کړي دامستحب عمل دی(۱۳۴)

---

۱۳۱- فتاوی الهندیة(عالمګیري):۱/۱۱۵ چاپ: رشیدیة کویټه، رمضان المبارک کي فضایل وبرکات:۹۳ چاپ: دارالعلوم کراچي

۱۳۲- فتاوی الهندیة(عالمګیري):۱/۱۱۶ چاپ: رشیدیة کویټه،

۱۳۳- فتاوی الهندیة(عالمګیري):۱/۱۱۶ چاپ: رشیدیة کویټه

۱۳۴- فتاوی الهندیة(عالمګیري):۱/۱۱۶ چاپ: رشیدیة کویټه

دتيري شپې فاسدسوي دوه رکعته تراويح بله شپه دتراوو په نيت په جمه راګرځول مکروه دي.(١٣٥)

که دچاڅخه تراويح پاته سوې قضا نه لري نه په جمع اونه يوازي.(١٣٦)

که امام سلام وګرځوي په مقتديانو کښې يوه ويل درې رکعته مووکړه بل ويل يا دوه رکعته وسوه نوملادي په خپلي رايي باندي عمل وکړي که يې پرخپلي رايي باندي هم باور نه درلود دهغه چا په قول دي وکړي چې دده په اند رښتنی سړی وي(١٣٧)

دهرو دوو رکعتو تراوولپاره جلاجلانيت کول ضروري نه دی.(١٣٨)

که چا دماخوستن فرض لمونځ اوسنت نه وي کړي دهغه تراويح نه صحي کيږي لومړی بايد دماخوستن لمونځ او سنتونه وکړي وروسته تراويح وکړي ځکه چې تراويح دماخوستن دلمانځه تابع

---

١٣٥- قاموس الفقه: ٢/٤٥٠چاپ: پبلشرز کراچي
١٣٦- فتاوى الهندية(عالمګيري): ١/ ١١٧ چاپ: رشيدية کويټه
١٣٧- فتاوى الهندية(عالمګيري): ١/ ١١٧ چاپ: رشيدية کويټه
١٣٨- البحر الرايق : ١/ ٢٩٤ چاپ: رشيدية . فتاوى الهندية(عالمګيري): ١/ ١١٧ چاپ: رشيدية کويټه

دي په همدې خاطر امام ابوحنيفه رحمه الله فرمايي كه چاته معلومه سوه چي دماخوستن لمونځ موبې اودسه كړی دی اوتراويح اووتر مو په اوداسه كړي دي نو دماخوستن لمونځ اوسنت به د تراووسره بيرته راګرځوي وتر به نه راګرځي ځكه چي تراويح دماخوستن دلمانځه تابع دي وتر تابع نه دي .([139])

دخلكو دكهالی په وجه دختم تراويح پريښودل جايز نه دي.([140])

په تراووكي التحيات تويوازي ترعبده ورسوله پوري ويل او اللهم صل اواللهم ربنا پرېښودل جايز دي كه پرخلكوغميدل خوچي وويل سي ډيره ښه خبره ده .([141])

كه دچاځه يوڅه تراوې تيري سوي وې دملاسره يې وتر وكړه وروسته يې پاته تراوې راوګرځولې داجايزدي([142])

---

[139] – فتاوى الهندية(عالمكيري): ١ /١١٥ چاپ: رشيدية كويټه
[140] – فتاوى الهندية(عالمكيري): ١ /١١٧ چاپ: رشيدية كويټه
[141] – فتاوى الهندية(عالمكيري): ١ /١١٧ چاپ: رشيدية كويټه
[142] – الفتاوى السراجيه: ١٢٠ چاپ : مكتبه معروفيه كويټه

په تراووکښي د قران کریم دختم پرمهال چي کله قل اعوذ برب الفلق او قل عوذ برب الناس ووایي نو په لومړي رکعت دي رکوع وکړي په دوهم رکعت کښي دي الحمدلله او دبقرې سورت تر( هم المفلحون )ووایي .[١٤٣]

په تراووکښي دولاړ سړي اقتدا په ناست امام پسي صحي ده[١٤٤]

د تراووپر ته هرډول نفل په جمه کول جایز نه دي بلکه هغه انفرادا کیږي[١٤٥]

په تراووکښي مقتدي ته دانه ده پکارچي ترهغو ناست وي ترڅو ملا رکوع ته ځي نودی راولاړیږي ځکه ددستیا، کهالیۍ علامه او دمنافقینو سره مشابهت دی(١٤٦)

د ٢٧ په شپه ختم کول ښه کار دی [١٤٧]

---

[١٤٣]- الفتاوی السراجیه: ١٢٠چاپ : مکتبه معروفیه کویټه
[١٤٤]-البحر الرایق :باب الامامة: ١/ ٣٨٧رشیدیة
[١٤٥]-البحر الرایق :بابالوتروالنوافل: ٢/٥٦ رشیدیة
[١٤٦]-البحر الرایق :باب ادراک الفریضة: ٢/٧٥چاپ: رشیدیة
[١٤٧]- فتاوی الهندیة(عالمکیري): ١/١١٨ چاپ: رشیدیة کویټه

معتکف که دګرمي په خاطرصرف دیخوالی لپاره غسل کولوته دمسجدڅخه ووتي اعتکاف ئي فاسدسو البته دواجب غسل لپاره وتلای سی لکه دجنابت اواحتلام .(۱۴۸)

معتکف که بې عذره لږګړي هم دمسجد څخه ووزي اعتکاف ئي فاسد یږي اګرکه په هیره سره وي.(۱۴۹)

ښځه په کورکي دمیړه په اجازه اعتکاف کولاي سي که بې اجازې ورولویږي میړه ئي داعتکاف څخه را یستلاي سي (۱۵۰)

---

۱۴۸- کفایت المفتی:ج۶ ص: ۴۰۲ چاپ:ادارۃالفاروق احسن الفتاوی ج :۴ ص :۵۰۷ باب الاعتکاف چاپ :سعیدا مدادالفتاوی کتاب الصوم والاعتکاف ج :۲ ص: ۱۸۴ چاپ دارالعلوم ک فتاوی عثمانی ج :۲ ص :۱۹۶ فتوای نمبر ۱۴۷۶ عالمګیری : ج: ۱ ص: ۲۱۳ چاپ: رشیدیة ردالمحتار :ج: ۲ص: ۴۴۵ چاپ: سعید المتانة فی مرمة الخزانة :ص :۳۷۸ خیرالفتاوي :۴/۱۳۲ امدادیة دفتاوي فریدي ج: ۲ ص: ۱۹۶ چاپ :صوابي قول دعدم فساددپورتني نورو په مقابل کي مرجوح دي .واللہ اعلم

۱۴۹-قاضي خان . کتاب الصوم ،فصل فی الاعتکاف:ج:۱ ص: ۲۲۲ ،رشیدیة ردالمحتار،باب الاعتکاف :ج: ۲ ص: ۴۴۷چاپ :سعید عالمګیری : کتاب الصوم باب الاعتکاف :ج : ۱ ص: ۲۱۲ چاپ رشیدیة فریدیة :ج ۲ ص: ۲۰۰ چاپ زروبي صوابي آپ کی مسائل :ج: ۴ ص: ۶۲۶ اعتکاف کی مسائل احسن الفتاوی ج : ۴ ص : ۵۰۷ .

ښځه به دکورپه هغه حصه کي اعتکاف ته ورلویږي چي دي دلمانځه لپاره ټاکلي وي په نا ټاکلي ځای کي ئي اعتکاف نه صحیح کیږي(١٥١)

که داعتکاف په دوران کی ښځي ته حیض(میاشتني مریضي) راسي اعتکاف ئي فاسدسو.(١٥٢)

ښځه که دمیړه په اجازه اعتکاف ته ورولویږي بیایی میړه داعتکاف څخه نسی راایستلاي.(١٥٣)

[١٥٠]-احکام القران (لظفراحمد عثمانی)ج:١ ص:٢٧١ چاپ :ادارة القران والعلوم الاسلامیة کراچي

[١٥١]-مراقي الفلاح شرح نورالایضاح کتاب الصوم باب الاعتکاف :ص:٦٩٩ چاپ:محمدیة اباسین رود چمن ،وبیروت بحرالرائق جزء :٢ ص: ٣٠١

[١٥٢]-بدائع الصنائع:باب الاعتکاف :ج:٢ ص:١١٦ چاپ : دارالکتب العلمیة بیروت الطبعة الثانیة :١٤٠٦ آپ کی مسائل :ج:٤ ص:٦٢٨ اعتکاف کی مسائل .

[١٥٣]التجرید :٣/١٦١١ رقم المسالة:٤٠٦ مکتبة ارګ بازارقندهار محمودیة :١٠/٢٥١ ادارة الفاروق کراچي.

ښځه په خپل تا کلي اعتکاف ځاي کښي داعتکاف پرمهال ډوي پخولاي سی. (۱۵۴)

داعتکاف کولولپاره څوک په مزدوري نیول جایزنه دی(۱۵۵)

دروژي پرشلمه (دیویشتم شپه )ترلمرلویدومخکي اعتکاف ته دورلویدووخت دی(۱۵۶)

معتکف دجمعي دلمانځه لپاره بل مسجد ته تلاي سي البته دلمانځه اوسنتو کولو وروسته به فوراخپل داعتکاف مسجد ته راځي. (۱۵۷)

نابالغ هلک هم اعتکاف کولای سی. (۱۵۸)

---

[154] -محمودیة: ۱۰/۲۵۱ ادارة الفاروق کراچي

[155] -مسایل رفعت قاسمي ج: ۴ ص: ۱۱
چاپ: سید احمد شهید، خیرالفتاوی: ۴/۱۳۸، امدادیة ملتان درالعلوم دیوبند: ۶/۳۱۶ دارالاشاعة لاهور

[156] -احکام القران: ج۱ ص ۲۷۰ دظفراحمد عثمانی چاپ: ادارة القران کراچی فتاوي محمودیة: ج۱ ص: ۲۶۶ باب الاعتکاف چاپ: ادارة الفاروق کراچي نجم الفتاوی ج ۳ ص: ۳۰۷ چاپ: یاسین القران کراچی

[157] -آپ کی مسائل: ج: ۴ ص: ۶۳۰ اعتکاف کی مسائل چاپ: مکتبة لدهیانوي شهید - فتاوی قاضی خان علی الهندیة ج: ۱ ص: ۲۲۱ رشیدیة

په کم مسجد کی چی پنځه وخته لمونځ عملاً په جمعه نه کیږي هلته اعتکاف نه صحیح کیږي. (١٥٩)

دمسجد شاوخوا چاردیوالی، حجری، اودمسجد اړونده ساحة په مسجد کښي نه شمیرل کیږی ځکه نو داعتکاف په ساحة کښي هم داخله نه ده. (١٦٠)

دننه اودباندی مسجد په اعتکاف کي یوډول حکم لري. (١٦١)

دمسجد مناره که په مسجد کښي جوړه وه او یادباندي وه خودروازه ئي مسجد ته راخلاصه وه دا په مسجد کښي داخله بلل کیږي. (١٦٢)

---

١٥٨-البحرالرائق : ج ٢ ص : ٣٢٢ رشیدیة آپ کی مسائل : ج: ۴ ص: ۶۲۷۰ اعتکاف کی مسائل چاپ : مکتبةلدهیانوي شهید

١٥٩-نورالایضاح ص : ۱۵۱ باب الاعتکاف مکتبه حنفیة کوېټه نجم الفتاوی ج : ٣ ص : ٣١٢ یاسین القران کراچی.

١٦٠-الموسوعةالفقهیة :ج: ۵ ص: ۲۲۵ چاپ :میاعبدالحکیم کتب خانه ارګ بازارقندهار

١٦١-الموسوعةالفقهیة :ج: ۵ ص: ۲۲۵ چاپ :میاعبدالحکیم کتب خانه ارګ بازارقندهار

١٦٢-الموسوعةالفقهیة :ج: ۵ ص: ۲۲۵ چاپ :میاعبدالحکیم کتب خانه ارګ بازارقندهار

په وتلو کي د ټوله بدن وتل معتبر دی د بدن د بعضي حصي لکه سر یالاسونو په وتو سره اعتکاف نه فا سد یږي دا ډول که یوه پښه د ننه بله دباندي وي اعتکاف نه فاسد یږي که دواړه پښي دباندي ووتلي اعتکاف فاسد یږي. (١٦٣)

که داړتیا پرمهال څوک نه وي د پیشلمي ،روژه مات اونوروخوراکي توکودراوړلو لپاره معتکف وتلاي سی البته که دراوړلو څوک ؤ بیا دیادسوي کا رونو لپاره وتل اعتکاف باطله وي .(١٦٤)

که څوک په خپل کورکي په قضای حاجت (چکر ) کولوآموخته وي بل ځاي ټي زړه نه غواړي هغه کولاي سي دخپل کورتشناب یابیت الخلاء ته ولاړ سي .(١٦٥)

---

١٦٣-الموسوعةالفقهية :ج:٥ ص: ٢٢٥ چاپ :میاعبدالحکیم کتب خانه ارګ بازارقندهاربحواله فتح الباري :ج ۴ ص: ٢٨٢ وصحيح مسلم ج١ : ٢۴۴ وفتاوي محمودية: ج: ١٠ ص: ٢۶۴ باب الاعتكاف چاپ : ادارة الفاروق كراچي .

١٦٤-فتاوي محمودية : ج١٠ ص : ٢۶۵ ، ٢٣۶ ، ٢٨١ چاپ :ادارة الفاروق كراچي بحرالرائق ج: ٢ ص: ٢٣٠ با ب الاعتكاف رشيدية مراقي الفلاح ص : ٧٠۴ چاپ :قديمي ونهرالفائق ج ٢ ص: ۴٧ چاپ : امدادية ملتان

١٦٥-نهرالفائق ج ٢ ص: ۴۶ چاپ : امدادية ملتان وردالمحتار ج : ٢ ص : ۴۴۵ سعيد كراچي هندية :ج ١ ص : ٢١٢ الباب السابع چاپ : رشيدية

چي د کلي او محل په يوه مسجد کښي اعتکاف وسي د نورو کليوالو غاړي خلاصيږي البته غوره دا ده چي په هر مسجد کښي اعتکاف وسي لکه تراويح چي کيږي. (١٦٦)

داعتکاف کولو پر مهال معتکف ته کوروالي (نزديکت) کول ناجايزده که يي وکړه اعتکاف يې باطل سودا که دورځي وي او که دشپي په مسجد کښي وي اوکه دباندي. (١٦٧)

معتکف کولاي سي چي په تلو راتلو کښي دمريض پوښتنه اويانوري دضرورت خبري وکړي البته عليده دريدل جايز نه دی (١٦٨)

---

[١٦٦] -مجموعة رسائل اللکنوي :ج ص :١٧، ١۶، ١٩ باب (الاسعاف في حکم الاعتکاف) چاپ : انتشارات احمد جام. نجم الفتاوی :ج ٣ ص :٣١٠ ياسين القران کراچي . احسن الفتاوی ج :۴ ص :۵٠٧ باب الاعتکاف چاپ : سعيد بحواله رد المحتارج : ١ ص: ۶۶٠ .

[١٦٧] -احکام القران دظفراحمدعثماني ج : ١ ص٢٧٠ چاپ :ادارة القران والعلوم الاسلامية کراچي معارف القران : ١ص : ۴۵۶ دارالعلوم کراچي قرطبي :٢ ص ٣٣٢ بيروت مظهري: ١ ص:٢٠٧

[١٦٨] -مسايل اعتکاف رفعت قاسمي :۴/٣۶ مکتبه سيد احمدشهيد اکوړه ختک فتاوي حقانية :۴/٢٠۴ دارالعلوم حقانية اکوړه ختک بحواله:بحر:٢/٣٠۴ خيرالفتاوي:۴/١٣٩ امدادية نجم الفتاوي :٣/٣١۵ ياسين القران

که د معتکف روژه فاسده سوه د هغي ورځي اعتکاف یی هم فاسد سو دیوي ورځي فاسد سوی اعتکاف قضا به راوړي چي هغه دلمر ختو څخه بیا ترلمرلویدو پوري ده او روژه به هم ورسره نیسی روژه نفلي وي که فرضي یا قضایی ځکه چي بی له روژي اعتکاف نه صحیح کیږي اعتکاف که دشپي له خوا فاسد سي بیا به دیوي شپي اوځي دواړو قضا راوړي .(۱۶۹)

دروژي دآخرنیو لسو ورځو سنت اعتکاف که فاسد سی صرف دهغي یوي ورځی قضا به احتیاطا راوړی چي اعتکاف یی پکښی فاسد کړي دي اوبس(۱۷۰)

دجمعي د ورځي مستحب غسل لپاره معتکف وتلاي سي(۱۷۱)

که څوک پرځان باندي ددوؤیا تردوؤزیا تو ورځو اعتکاف کول نذر کړي نو پرده باندي دورځوسره دشپو اعتکاف کول هم لازم

---

۱۶۹-التجرید:۳/۱۵۸۷ رقم:۶۹۹۳ لایصح الاعتکاف الا بالصوم) المحیط البرهاني :۲/۶۷۴الفتاوي :۴/۵۱۱باب الاعتکاف چاپ :سعید ایچ ایم کراچي الفتاوي التاتارخانیة:۳/۴۴۷، ۴۴۳ رشیدیة

۱۷۰-الفقه الحنفي فی ثوبه الجدید :۱/۴۳۲ کتاب الصیام الاعتکاف.دارالقلم دمشق خیرالفتاوي :۴/۱۳۱ امدادیة بحواله شامي :۲/۱۸۰

۱۷۱-اشعة اللمعات :۲/۱۲۸ احسن الفتاوي :۴/۵۱۲ چاپ:سعید

دي همداډول که څوک پرځان باندي د دوؤيا زيا توشپو اعتکاف کول نذر کړي نو پرده باندي دورځو اعتکاف کول هم ورسره لازمي دي(۱۷۲)

نذرسوی اعتکاف که فاسد سو قضاء ئي دروڅورسره راوړل واجب ده(۱۷۳)

دروژي مياشتي دوروستني لسو ورځوسنت اعتکاف که فاسدسي قضانه لري(۱۷۴)

که څوک د مريضي له کبله داعتکاف څخه ووزي اعتکاف يي ختم سو البته ګنهګاره نه دي.(۱۷۵)

---

[172] -الفتاوي التاتارخانية:۳/۴۴۹ رقم المسالة :۴۸۲۱ رشيدية -
التجريد :۳/۱۶۰۸ رقم المسالة: ۴۰۵ مکتبة محمودية ارګ بازار قندهار
احسن الفتاوي :۴/۵۱۴ سعيد کراچي

[173] -مراقي الفلاح شرح نورالايضاح کتاب الصوم باب الاعتکاف :ص: ۳۸۲ چاپ: قديمی کتب خانه مقابل آرام باغ کراچي المبسوط للسرخسي الحنفي : ج: ۳ ص :۱۲۸ باب الاعتکاف چاپ: ،رشيدية کويته.

[174] -فتاوی محمودية :ج :۱۰ ص: ۲۵۶ باب الاعتکاف سوال :۴۹۳۸ چاپ : ادارةالفاروق کراچي.

[175] -تاتارخانية:۳/۴۴۶ رشيدية

پرچاچي دجمعي دورځي لمونځ واجب نه وي هغه که داعتکاف ځخه دجمعی دلمانځه لپاره ووتی اعتکاف يي فاسد سو (١٧٦)

دسګريټ ځکولو لپاره وتل جايز نه دي په مسجد کښي دننه ځکول هم جايزنه دي يابه يي په دغو ورځو کښي پريږدي اويابه يي دقضای حاجت کولواويا تلوراتلو پرمهال تبعاځکوي خوله به دبوي ځخه پاکوي مسجد ته به راځي(١٧٧)

دمسجد ځخه دباندي سرپټول پالتوکاردي(١٧٨)

هغه تشنابونه چي غسل خانه هم لري دقضاي حاجت کولووروسته که معتکف داوداسه هومره وخت کښي ژرژرد ګرمي ليري کولولپاره غسل هم وکړي جايزدي اعتکاف ته يي زيان نه رسيږي.(١٧٩)

ديوه کلی سړی چي په بل کلي کښي اعتکاف وکړي دهغه کلی دکليوالوسنت اداسواوغاړي يي خلاصيږی البته پخپله

---

١٧٦-الفقه الاسلامي وادلته : ٢/٦٩٧ بيروت
١٧٧-نجم الفتاوي : ٣/٣١٩ ياسين القران کفايت المفتي: ٦/٤٠٣ ادارة الفاروق کراچي
١٧٨-نجم الفتاوي : ٣٢٣ ياسين القران
١٧٩-احسن الفتاوي : ٤/٥٠٥ مسايل اعتکاف رفعت قاسمي : ٤/٢٦

دمعتکف دمحل دخلګواوکليوالو غاړی د دغه نفرپه اعتکاف سره چي په بل کلي کښی يي کړي دي غاړي نه خلاصيږی([180])

دنفلی اعتکاف لپاره روژه نيول شرط نه ده([181])

سنت اعتکاف تر لسوورځوکم نه صحيح کيږی نفلی اعتکاف ديوه ګړي لپاره هم صحيح دي([182])

معتکف کولاي سی چي دمسجد څخه دباندي خلګوته په ګويا(سپيکر) کښي اصلاحي تقريروکړي([183])

دغټ کلی اومحل په مسجد کښي په اعتکاف کولوسره دکوشنی محل دخلګوسنت کفايی اعتکاف نه ادا کيږی(غاړي يي نه خلاصيږی([184])

---

[180] -دارالعلوم ديوبند :۶/۳۱۵ دارالاشاعة لاهور فتاوي محمودية:۱۰/۲۳۰ ادارة الفاروق کراچي

[181] -ردالمحتارعلی الدرالمختار: ۲/۴۴۲ سعيد الفتاوي محمودية:۱۰/۲۵۸ ادارة الفاروق کراچي

[182] -دارالعلوم ديوبند :۶/۳۱۴ دارالاشاعة لاهور فتاوي محمودية:۱۰/۲۵۸ ادارة الفاروق کراچي

[183] -فتاوي محمودية:۱۰/۲۵۸ ادارة الفاروق کراچي

[184] -دارالعلوم ديوبند :۶/۳۱۰ دارالاشاعة لاهور

که څوک له سره د جنازې مریض پوښتني او داسې
نورو کارونو لپاره د اعتکاف څخه د وتلو نیت په څرګند ډول
وکړي (په خوله ووايي) بیا که یاد سوې کارونو لپاره ووزي
اعتکاف يې نه فاسدېږي([185])

اعتکاف په هرهغه مسجد کښې صحيح او ضروري دي چې هلته
پنځه وخته لمونځ په جماعت کېږي([186])

د مسجد په هر منزل کښې اعتکاف صحيح دي دا ډول معتکف
دیوه منزل څخه بل منزل ته هم تلاي سي پدې شرط چې ځيني يې
د مسجد په حدودو کښې دننه وي([187])

## د اعتکاف فضیلت

---

[185]-خیرالفتاوي :۴/۱۳۹ امدادیة ملتان
[186]-محمودیة: ۱۰/۲۲۰ ادارة الفاروق کراچي
[187]-مسایل اعتکاف رفعت قاسمي: ۴/۵۲ سید احمد شهید اکوړه ختک بحواله
شامي

(۱)ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي:چي رسول الله صلى الله عليه وسلم دمعتكف په اړه وفرمايل:هغه (اعتكاف كونكي) خپل ځان دګناهونوڅخه ژغوري اوساتی يی او ده لره دنيکی کونکوپه څيردنيکيو(هغه ثوابونه هم) جاری کيږي (چي داعتكاف له كبله يی ونه شوای کړاي لکه دجنازي سره تلل ،دجنازي لمونځ کول، دمريض پوښتنه کول اوداسی نور .ابن ماجه:ص:۱۲۷ باب ماجاءفی ثواب الاعتكاف چاپ:قديمی آرام باغ کراچی مضاهرحق شرح مشكوة لمولاناقطب الدين خان دهلوي حديث نمبر:۲۰۰۶

(۲) حضرت عايشة رضي الله عنهافرمايی:چي نبي صلى الله عليه وسلم دژوند ترپايه دروژي مبارکي مياشتي دآخرنيولسوورځواعتكاف كاوه . ترمذي كتاب الصوم،باب نمبر:۷۱ حديث نمبر:۷۹۰ بدايع:۲/۱۰۸ كتاب الاعتكاف چاپ:بيروت

اعتكاف اشرف الاعمال (غوره عمل) دي.البحرالرايق:۲/۲۹۹ اوحاشية الطحطاوي:ص:۷۰۸ چاپ: محمدية كتب خانه چمن اوبيروت

دامام ابوحنیفه رحمه الله استاذ مشهور تابعی عطاءبن ابی رباح خراسانی رحمه الله فرمایی: دمعتکف مثال دهغه چا په شان دي چي دخپل مطلب اوضرورت دپوره کیدولپاره یی خپل ځان دبادشاه ددرباړپه دروازه باندي اچولی وي اووایی ترڅوخپل مطلب ته ونه رسیږم هم دلته به احتجاجاپروت یم هم داډول معتکف دحال په ژبه داوایی چي ترڅومی الله جل وعلی ونه بخښي زه به دلته دالله په کور کښی اوسم.بدایع:۲/۱۰۸ بیروت حاشیةالطحطاوي:ص: ۷۰۹ البحرالرایق۲/ ۲۹۹ رشیدیة

امام زهري رحمه الله فرمایی :زه خلګو ته حیران یم چي دوی ولي اعتکاف پري ایښي حال داچي نبی علیه السلام به کله یو کارکاوه او کله به یی پریښاوه مګراعتکاف یی کله هم نه دي پري ایښي داپردي دلالت کوي چي اعتکاف دنبی علیه الاسلام همیشنی سنت دي البته په دؤوخبروسره واجب اونذرګرځي ۱- چي داسي ووایي زه به دالله درضاء لپاره یوه ورځ او یایوه میاشت اعتکاف کوم ۲-دیوشي پوري تړاؤ ورکي مثلاداسی ووایی: که خداي پاک جوړکړم اویا فلانکي کاروسونوبه زه اعتکاف کوم. بدایع :۲/۱۰۸ باب الاعتکاف بیروت